# إسلام

د رب العالمين دين دی

الإسلام دين رب العالمين -بشتو

جمعية خدمة المحتوى الإسلامي باللغات

جمعية الدعوة وتوعية الجاليات بالربوة

بيان الإسلام
Bayan AL-Islam

## د دې دين (اسلام) اصول او ستنې څه دي؟

دا دين د الله تعالی له خوا د خپلو بندګانو لپاره اسانه شوی دين دی، تر ټولو لوی رکن يې دا دی چې پر الله د رب او معبود په توګه ايمان ولري، او د هغه په ملايکو، کتابونو، رسولانو ، د اخرت په ورځ او تقدير ايمان ولري، نو پدې ګواهي ورکړي چې له الله پرته بل معبود نشته، او محمد صلی الله عليه وسلم د الله رسول دی، لمونځ وکړي، زکات ورکړي که چېرته دومره مال ولري چې نصاب ته رسېدلی وي، د رمضان مياشت روژه ونيسي چې هغه په کال کې يوه مياشت ده، او د الله تعالی د لرغوني کور حج وکړي؛ کوم چې ابراهيم عليه السلام د خپل رب په امر جوړ کړی، البته که چېرته يې د ورتلو توان درلوده.او له هغه څه څخه ډډه وکړي چې الله تعالی دربانديې حرام کړي دي لکه: شرک، نفس وژنه، زنا، او د حرام مال خوړل، نو کله دې چې پر الله جل جلاله ايمان راوړ او دا عبادتونه دې ترسره کړل او له دې حرامو څخه دې ځان وساته نو ته پدې دنيا کې مسلمان يې او د قيامت په ورځ به الله پاک تاته په جنت کې ابدي نعمتونه او ابدي ژوند درکړي.

## قرآن کريم څه شی دی؟

قرآن کريم د رب العالمين کتاب دی، او د الله تعالی کلام دی چې د جبرائيل عليه السلام په واسطه پر محمد صلی الله عليه وسلم نازل شوی، پدې کې هر هغه څه دي چې الله تعالی يې د خپل ذات او خپلو ملايکو، کتابونو، پيغمبرانو، کتابونو، د اخرت د ورځې او د خير او د شر د اندازې په اړه پېژندل واجب کړي دي.په دې کې فرض عبادات او هغه حرام څيزونه دي چې ډډه کول ترې واجب دي، نيک او بد اخلاق او هر هغه څه چې د خلکو د دين، دنيا او اخرت سره تړاو لري، او هغه يو معجز (حيرانونکی) کتاب دی چې الله تعالی پرې خلک ننګولي تر څو يې په څېر بل کتاب راوړي، او د قيامت تر ورځې پورې په هغه ژبه ساتل تضمين شوی چې پرې نازل شوی دی، هېڅ يو توری ترې نه کم شوی او نه يې کومه کلمه تبديل شوې ده.

## خلک څنګه د رسولانو عليهم السلام رېښتينولي پېژني؟

خلک د رسولانو حقانيت په څو لارو پېژني، لکه:

کوم حق او هدايت چې دوی راوړی، سالم عقل او فطرت يې مني، او عقل يې په سموالي شاهدي ورکوي او له مسلمانانو پرته بل هېڅوک داسې څه نه شي راوړلای کوم چې دوی راوړی دی (حق دين).

هغه څه چې پيغمبرانو -عليهم السلام- راوړي دي په هغوی کې د خلکو د دين او دنيا د چارو سمون، د تمدن رغونه، د هغوی د اديانو، مالونو او ناموسونو ساتل دي.

پيغمبران عليهم السلام له خلکو څخه نيکۍ او هدايت ته د بلنې په بدل کې اجر نه غواړي، بلکې دوی د خپل رب څخه د اجر انتظار کوي.

هغه څه چې پيغمبرانو عليهم السلام راوړي؛ حق او ثابت دي، شک پکې نشته، نه پکې تضاد شته او نه ګډوډي، او هر پيغمبر له وړاندې د نورو تصديق کوي او هغه څه ته بلنه ورکوي چې هغوی ورکوله.

الله جل جلاله په ښکاره نښانو او ځواکمنو معجزو سره د خپلو پيغمبرانو تاييد کوي؛ هغه معجزې چې الله تعالی يې د دوی په لاسونو اجرا کوي؛ تر څو د دوی په رېښتينولۍ دلالت وکړي چې د الله له طرفه رالېږل شوي، او د پيغمبرانو ترټولو لويه معجزه د وروستي رسول محمد صلی الله عليه وسلم معجزه ده، چې قرآن کريم دی.

## د حساب او بيا راژوندي کېدو ثبوت څه دی؟

ايا ته نه ګورې چې ځمکه مړه وه او ژوند پکې نه و، نو کله چې پرې اوبه را اووريږي وخوځېږي او هر ډول تازه شنه بوټي پکې رازرغون شي، نو هغه ذات چې دا يې ژوندۍ کړه، د دې توان هم لري چې مړي راژوندي کړي.هغه ذات چې انسان يې د سپکو اوبو له يو څاڅکي څخه پيدا کړی پدې قادر دی چې د قيامت په ورځ يې بيا د حساب لپاره راپورته کړي او بشپړه بدله يې ورکړي، که ښه يې کړي وي نو ښه بدله او که بد يې کړي وي نو بده بدله.هغه ذات چې اسمانونه، ځمکه او ستوري يې پيدا کړي د انسان په بيا پيدا کولو قادر دی؛ ځکه د انسان بيا ځلې پيدا کول د ځمکې او اسمانونو له پيدا کولو څخه اسان دي.

## د قيامت په ورځ به څه وي؟

رب العالمين به خلک له قبرونو څخه راپورته کړي، بيا به يې ورسره د عملونو حساب وکړي، نو چا چې ايمان راوړی او پيغمبران يې منلي، جنت ته به يې داخل کړي، هغه جنت چې تلپاتې نعمتونه به پکې وي، داسې لوی نعمتونه چې د انسان په خاطر کې به هم ګرځېدلي نه وي، او چا چې کفر وکړ؛ الله تعالی به يې هغه اور ته ننباسي چې تلپاتې عذاب به پکې وي، داسې عذاب چې انسان يې تصور هم نه شي کولی، نو کله چې انسان جنت او يا دوزخ ته داخل شي هېڅکله به پکې بيا نه مري، نو هغه به د تل لپاره په نعمتونو او يا عذاب کې وي.

**کله چې يو څوک وغواړي اسلام کې داخل شي، نو څه بايد وکړي، آيا کوم خاص مراسم شته چې تر سره يې کړي، او يا داسې څوک شته چې اجازه ترې واخيستل شي؟**

کله چې انسان پدې پوه شي چې حقيقي دين اسلام دی، او دا چې اسلام د رب العالمين دين دی، نو بايد اسلام کې په داخلېدو بيړه وکړي؛ ځکه هوښيار انسان ته چې کله حق معلوم شي، نو بايد چې بيړه پکې وکړي، او دا کار دې نه وروسته کوي.او څوک چې په اسلام کې د داخلېدو اراده وکړي، نو کومو ځانګړو مراسمو ته اړتيا نه لري، او دا پرې هم لازم ندي چې کوم ځانګړی کس له ځان سره ولري، خو که دا کار د يو مسلمان په شتون او يا يو اسلامي مرکز کې وشي نو غوره ده، که نه بسنه ورته کوي چې همدومره ووايي: (أشهد أن لا إله إلا الله، وأشهد أن محمدًا رسول الله)،يعني زه ګواهي ورکوم چې له الله پرته بل حق معبود نشته او پر دې چې محمد صلی الله عليه وسلم د الله رسول دی، پداسې حال کې د دې خبرو په معنا پوه وي او ايمان پرې ولري، نو پدې سره دی مسلمان شو؛ بيا به لږ لږ د اسلام نور قوانين زده کوي؛ تر څو پرې د الله جل جلاله واجب حق ادا کړي.





Ps370-t3

لمزيد معلومات : byenah.com

# الاسلام

## د رب العالمين دين دی

بسم الله الرحمن الرحيم

## د رب العالمين صفات څه دي؟

دا په کايناتو کې ترټولو لويه پوښتنه ده؛ او دا ترټولو مهمه پوښتنه ده چې انسان يې بايد په ځواب پوه شي.

زموږ رب هغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه يې پيدا کړې او له اسمانه يې اوبه نازلې کړې او په هغو سره يې ميوې او ونې راشنې کړې چې زموږ او د هغو څاروېو لپاره خوارۀ شي چې موږ ترې خوراک کوو.او دی همغه ذات دی چې موږ او زموږ پلرونه يې پيدا کړي، او همغه ذات دی چې شپه او ورځ يې پيدا کړې، او همغه ذات دی چې شپه يې د خوب او استراحت لپاره او ورځ يې د رزق د پلټنې لپاره ګرځولې.او دی هماغه ذات دی چې لمر، سپوږمۍ، ستوري او سمندرونه يې زموږ تابع کړي او څاروي يې زموږ تابع ګرځولي چې موږ ترې خوراک کوو او د هغوی له شيدو او وړيو څخه ګټه اخلو.



## د رب العالمين صفات څه دي؟

رب هغه ذات دی چې مخلوقات يې پيدا کړي، او د حق او هدايت لارې ته يې لارښوونه کوي. او هغه ذات دی چې د ټولو مخلوقاتو چارې اداره کوي او هغه دوی روزي ورکوونکی او هغه د هر هغه څه مالک دی چې په دنيوي ژوند او په آخرت کې دي، او څه چې دي نو د هغه ملکيت دي او له هغه پرته چې هر څه دي د هغه په واک او ملکيت کې دي.او دی هغه ذات دی چې نه مړ کيږي او نه ويده کيږي، او هغه قايم ذات دی چې د هر ژوندي حيات يې د امر پورې تړلی او هغه ذات دی چې رحمت يې هر څه ته شامل دی او هغه ذات دی چې له هغه څخه په ځمکه او اسمان کې هيڅ شی پټ نه دی.د هغه په خبر هيڅ شی نشته او هغه اوريدونکی او د هر څه ليدونکی دی، او هغه د خپلو آسمانونو د پاسه دی او له خپلو مخلوقاتو څخه بې نيازه دی، او مخلوقات هغه ته محتاج دي، هغه په مخلوقاتو کې نه منحل کيږي او نه يې د مخلوقاتو څخه کوم شی د هغه په سپيڅلي ذات کې منحل کيږي.رب هغه ذات دی چې دا پېژندل شوي نړۍ يې د خپلو ټولو متوازنو سيستمونو سره رامينځته کړې چې وروسته والی پکې نه راځي، هغه که د انسانانو او حيواناتو سيستمونه دي، يا د لمر، ستورو او د کائناتو د نورو اجزاوو سيستمونه چې زموږ په شاوخوا کې دي.

او دا چې هر هغه څه چې له هغه پرته يې عبادت کيږي هغه د ځان لپاره نه ګټه رسولی شي او نه ضرر، نو څنګه به هغه چاته ګټه ورسوي او يا به ترې ضرر لرې کړي چې عبادت يې کوي.

## زموږ رب پر موږ څه حق لري؟

په ټولو خلکو يې حق دا دی چې عبادت يې وکړي او هيڅ شی ورسره شريک ونه ګرځوي، نو له هغه پرته او يا له هغه سره به د بل څه عبادت نه کوي؛ نه د انسان، نه د تيري، نه د نهر، نه د جماد نه د ستوري او نه د بل څه، بلکې عبادت به يوازې الله رب العالمين ته خاص کوي.

## خلک په خپل رب څه حق لري؟

د خلکو حق په الله تعالی دا دی چې کله يې د هغه عبادت وکړ نو پاکيزه ژوند ورکړي چې دوی پکې امن او امان، سلامتيا، آرامي او رضايت ولري او په آخرت کې يې جنت ته داخل کړي، چېرې چې تل پاتې نعمتونه او ژوند دی، او که چېرته يې له امر څخه سرغړونه وکړي، نو د بدبختۍ او فقر ژوند به ورکړي، سره له دې چې دوی به فکر کوي چې د نېکمرغۍ او راحت ژوند لري، او په آخرت کې به يې اور ته دننه کړي؛ هغه اور چې له هغه څخه به نه راوځي، او د دوی لپاره به په هغه کې تلپاتې عذاب وي او دوی به تل پکې وي.

## زموږ له وجود څخه موخه څه ده؟ موږ ولې پيدا شوي يو؟

عزتمند رب موږ ته خبر راکړی چې موږ يې د يو باعزت هدف لپاره پيدا کړي يو، هغه دا چې موږ يوازې د هغه عبادت وکړو او هيڅ شی ورسره شريک نه کړو او موږ ته يې په خير سره د ځمکې د بيارغونې او ابادولو امر کړی، نو چا چې له خپل رب او خالق پرته د بل چا عبادت وکړ، نو په هغه هدف نه دی پوه شوی چې دی ورته پيدا شوی او نه يې د خپل خالق حق پوره کړی، او څوک چې په ځمکه کې فساد وکړي نو په هغه دنده نه دی پوه شوی چې ورسپارل شوې ده.



## څنګه د خپل رب عبادت وکړو؟

رب العالمين موږ د دې لپاره نه يو پيدا کړي چې همداسې مو پريږدي، زموږ ژوند يې بې ګټې ندی ګرځولی، بلکې له انسانانو څخه يې د هغوی قومونو ته پيغمبران ټاکلي چې د اخلاقو له اړخه تر ټولو بشپړ خلک او د پاکو نفسونو او پاکيزه زړونو خاوندان دي، نو هغوی ته يې خپل پيغامونه نازل کړل او ورسره يې هغه څه راولېږل چې د متعال رب د پېژندلو او د قيامت په ورځ د حساب او جزا لپاره د خلکو بيا راژوندي کولو په اړه يې پر خلکو پېژندل واجب دي.پيغمبرانو خپلو قومونو ته ورزده کړل چې څنګه د خپل رب عبادت وکړي، او د عبادتونو طريقه او وختونه يې وروښودل او دا چې په دنيا او اخرت کې څومره اجر او ثواب لري، او له هغو خوراکونو، څښاکو او نکاح ګانو څخه يې ووېرول چې رب يې پرې حرام کړي، او غوره اخلاقو ته يې د هغوی لارښوونه وکړه، او له بدو اخلاقو يې منع کړل.

## کوم دين الله تعالی ته د منلو وړ دی؟

الله جل جلاله ته منل شوی دين اسلام دی، او دا هغه دين دی چې ټولو انبياوو عليهم السلام خلکو ته رسولی، او الله تعالی د قيامت په ورځ لدې پرته بل دين نه مني او له اسلام پرته چې خلکو هر دين منلی هغه باطل دی، او خاوندانو ته يې ګټه نه رسوي، بلکې په دنيا او اخرت کې يې بدبخته کوي.

## ايا اسلام د کوم ځانګړي قوم دين دی؟

اسلام د ټولو خلکو لپاره د الله تعالی دين دی، پدې کې هېڅوک په هيڅ غوره والی نه لري مګر په تقوا او نيک عمل سره، او پدې کې ټول خلک سره برابر دي.